# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** پښتو

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د پښتو برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارټمنټ غړي

**ټولګی:** پنځم (د دري ژبو لپاره)

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۷ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:** بهیر مطبعه

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې
هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، گوجر دي
پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي
هم ایماق، هم پشه یان

دا هېواد به تل ځلیږي
لکه لمر پر شنه آسمان

په سینه کې د آسیا به
لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مو دی رهبر
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

# د پوهنې د وزير پيغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند رابښلی، او د لوست او ليک له نعمت څخه يې برخمن کړي يو، او د الله تعالی پر وروستي پيغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پيغام ورته (لوستل) و، درود وايو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمريز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونيز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدينو شوراګانې د هېواد د پوهنيز نظام شپږګوني بنسټيز عناصر بلل کيږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختيا او پرمختيا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونيز نظام کې د ودې او پراختيا په لور بنسټيزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونيز نصاب اصلاح او پراختيا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړيتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځيو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونيزو تأسيساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کيفيت او توزيع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور يو، چې د باکيفيته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنيو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونيز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مديرانو څخه په درناوي هيله کوم، چې د هېواد بچيانو ته دې د درسي کتابونو په تدريس، او د محتوا په لېږدولو کې، هيڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د يوه فعال او په ديني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زيار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤوليت په درک سره، په دې نيت لوست پيل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د يوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځيرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدريس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونيز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په ليکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپيڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بريا غواړم.

د معياري او پرمختللي ښوونيز نظام او د داسې ودان افغانستان په هيله چې وګړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزير

دکتور محمد ميرويس بلخي

# فهرست

## لومړی لوست

# قرآن کريم

**موخه**: د متن لوستل، ليکل، د الله ﷻ د احکامو منل او عملي کول.





### پوښتنې

- په تاسوکې به څوک ووايي چې قرآن کريم د چا کلام دی؟
- په تاسو کې څوک د قرآن شريف تلاوت کولای شي؟

**قرآن کريم د الله ﷻ کتاب دی. دا کتاب د جبرائيل ؑ په واسطه پر حضرت محمد ﷺ نازل شوی دی. الله ﷻ قرآن کريم د انسانانو د لارښوونې لپاره رالیږلی دی.**

**قرآن شريف دېرش سپارې او يو سلو څوارلس سورتونه لري. موږ پر قرآن کريم ايمان لرو. څوک چې د قرآن کريم په لارښوونو عمل کوي په دنيا او اخرت کې به د ښې برخې خاوند وي.**

## فعالیتونه

- ښوونکی دې د نوي تعلیمي کال د پښتو ژبې په لومړي درسي ساعت کې زده کوونکو ته ځان معرفي کړي. بیا دې زده کوونکي په وار سره د نورو په وړاندې لومړی ځان معرفي کړي. بیا دې ووایي چې رخصتي یې څنګه تېره کړې ده.
- زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته لوست له ځان سره ولولي. ښوونکی دې د هغوی ستونزې ورته حل کړي.
- یو زده کوونکی دې په ټولګي کې پورته شي، له نورو زده کوونکو څخه دې لاندې پوښتنې وکړي او هغوی دې ور ته ځواب ووايي، نور زده کوونکي دې ورته پام وکړي. که کومه تېروتنه وکړي، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.

لومړی زده کوونکی: قرآن کریم د چا کتاب دی؟

دویم زده کوونکی: قرآن کریم د الله ﷻ کتاب دی.

لومړی زده کوونکی: الله ﷻ قرآن کریم انسانانو ته د څه لپاره را لیږلی دی؟

دویم زده کوونکی: الله ﷻ قرآن کریم د انسانانو د لارښوونې لپاره را لیږلی دی.

-یو زده کوونکی دې د تختې مخې ته پورته شي، بل زده کوونکی دې ورته د قرآنکریم، نازل او کتاب کلمې د املا په ډول ووايي او هغه دې پرتختې و لیکي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| رسول | استازی |
| تېروتنه | اشتباه |
| دنده | وظیفه |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د قرآن کریم په هکله له کتاب څخه څو جملې ولیکي.

## دویم لوست

# حضرت عمر رضي الله عنه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د حضرت عمر رضي الله عنه د عدالت، رښتنیولی پېژندل او له عدالت او رښتینولی سره ځان عادت کول.








### پوښتنې

- په تاسو کې به څوك د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د یارانو نومونه واخیستلای شي؟
- ستا سو په فکر حضرت عمر رضي الله عنه څوك و؟

**حضرت عمر رضي الله عنه د مسلمانانو دویم خلیفه و. د پلار نوم یې خطاب و. حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د فاروق لقب ورکړی و. له ابوبکر صدیق رضي الله عنه څخه وروسته د هجرت په ۱۳ کال د مسلمانانو خلیفه شو. دولتي د فترونه یې جوړ او بیت المال یې تاسیس کړ. نوموړی د حق او عدالت طرفدار و. تل به یې د بې وزلو خلکو پوښتنه کوله او له هغوی سره به یې مرستې کولې. لس کاله یې خلافت وکړ. د هجرت په ۲۳ کال د (۲۳) کالو په عمر د ابولؤلؤ له خوا شهید شو.**

## فعالیتونه

- ښوونکی دې یو ځل متن ولولي چې زده کوونکي د کلمو او جملو په سم تلفظ او لوستلو پوه شي.

- دوه زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته لوست له ځان سره ولولي، که څه ستونزې یې درلودې، ښوونکي ته دې ووایي.

- زده کوونکي دې د سوال او ځواب په ډول لاندې پوښتنې په دوه کسیز ډول سرته ورسوي:
لومړی زده کوونکی: حضرت عمر رضي الله عنه د مسلمانانو څووم خلیفه و؟
دویم زده کوونکی: حضرت عمر رضي الله عنه د مسلمانانو دویم خلیفه و.

- څو زده کوونکي دې د اسلام د دویم خلیفه په باره کې خبرې وکړي.

- یو زده کوونکی دې تختې ته ولاړشي.د حضرت عمر رضي الله عنه نوم دې له یادو ولیکي.
نور زده کوونکي دې ورته څیر او د هغه تېروتنه دې ونیسي.

- زده کوونکي دې په وار سره ووایي:
- زما نوم... دی.
- پلار مې... نومیږي.
- د پنځم ټولګي زده کوونکی یم.

-زده کوونکي دې د لاندې جدول کلمې په ځیر سره وګوري. د جملو تش ځایونه دې له جدول څخه په خپلو کتابچو کې ډک کړي.

| | |
|---|---|
| حضرت عمر رضي الله عنه د مسلمانانو ....... خليفه و. | ۳ خليفه<br>۲ خليفه<br>٤ خليفه |
| د حضرت عمر رضي الله عنه د پلار نوم ........... و. | خطاب<br>عبدالعزيز |
| د حضرت عمر رضي الله عنه ................ خلافت وکړ. | ۱۰ کاله<br>۱۳ کاله<br>۱۲ کاله |
| حضرت عمر رضي الله عنه د هجرت ......... د مسلمانانو خليفه شو. | په ۱٤ کال.<br>په ۱۰ کال<br>په ۱۵ کال. |

## محاوره:

په وار سره په څلورو زده کوونکو باندې محاوره وکړئ.

**لومړی زده کوونکی:**

ګرانه ټولګيواله! داموږ ولې ښوونځي ته راځو؟

**دويم زده کوونکی:**

موږ ددې لپاره ښوونځي ته راځو چې په دين پوه شو په لوست او ليک پوه شو او له هيواد سره مينه پيدا کړو.

**لومړی زده کوونکی:**

زه به نور هره ورځ ښوونځي ته راځمه او هيڅکله به غير حاضري ونه کړم چې درسونه راڅخه پاتي نشي.

پروسږ کال چې جمال غير حاضري کوله، په درسونه نه پوهيده، هره ورځ به ترې درسونه

تیریدل بیا یې په ازموینه کې لږې نمرې واخیستې.

**دویم زده کوونکی:**

زه هره ورځ خپله کورنۍ دنده سرته رسوم او له پلار مور سره په کارونو کې هم مرسته کوم.

**لومړی زده کوونکی:**

دا خو ډیر ښه کار دی. زه هم په کور کې کار کوم.

هر زده کوونکی که هلک وي او که نجلۍ وي باید له خپلې مور او پلار سره چې کولای شي، مرسته وکړي.

**دویم زده کوونکی:**

زده کوونکي هم باید لوست ووایي او هم کورنۍ دنده ولیکي او کله چې وزګار شي بیا دې له مور او پلار سره مرسته وکړي.

- زده کوونکي دې لاندې عبارتونه په خپلو کتابچو کې جوړې کړي او بیا دې د هغوی سم شکل په ټولګي کې ووایي.

ښوونځی دی د پوهې د زده کړې لپاره ښکلی ځای

ښوونځی په زړه پورې د زده کړې لپاره ځای دی.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې تر خپلې وسې پورې هغه نوې پښتو کلمې په کتابچو کې ولیکي چې په تیرو لوستونو کې یې زده کړي دي.

# ښوونځی

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او له ښوونځي سره مینه پیدا کول.





## پوښتنې

- څوک به ووايي چې په انځور کې څه شی ويني؟
- ستاسو په فکر په ښوونځي کې څه زده کيږي؟

**ښوونځی د زده کړې او روزنې ځای دی. په ښوونځي کې نجونې او هلکان زده کړې کوي. موږ هره ورځ ښوونځي ته د زده کړې لپاره راځو. د ښوونځي قانون په ځان عملي کوو. که په لوست کې په کوم ځای پوه نشو، هغه په نښه کوو او له خپل ښوونکي څخه پوښتنه کوو. کله چې له ښوونځي څخه رخصت شو، سيده خپلو کورونو ته ځو.**
**همدارنګه د تېز باران او يا ږلۍ په وخت کې خپل ځانونه نږدې جومات او يا د خپلوانو کورونو ته رسوو.**

- ښوونکی دې زده کوونکو ته یوځلي په مناسب اواز سره لوست ووایي او د لوستلو په وخت کې دې ټول زده کوونکي وڅاري چې لوست ته ځیر اوسئ.

- څو زده کوونکي دې په خپله خوښه په وار سره په ټولګي کې لوست ووایي او نور دې ورته ځیر وي. که څه ستونزه ولري ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.

**لومړی محاوره**: په ټولګي کې دې دوه زده کوونکي پورته شي. یو زده کوونکی دې له بل څخه د لوست په اړوند پوښتنه وکړي او بل دې ورته ځواب ورکړي. نور دې ورته غوږ ونیسي. ښوونکي دې هم ورته ځیر وي .

**لومړی زده کوونکی**:

ښوونځی دڅه شي ځای دی؟

**دویم زده کوونکی**:

ښوونځی د زده کړې او روزنې ځای دی؟

**لومړی زده کوونکی**:

څوک په ښوونځي کې زده کړه کوي؟

**دویم زده کوونکی**:

په ښوونځي کې نجونې او هلکان زده کړې کوي.

**لومړی زده کوونکی**:

نجونې د څه لپاره زده کړې کوي؟

**دویم زده کوونکی**:

ددې لپاره چې خپلوخلکو او هیواد ته خدمت وکړي.

- څو زده کوونکي دې په ټولګي کې پورته شي د تېز باران او ږلۍ له خطرونو د ځان ساتنې په هکله دې خبرې وکړي او نور دې ورته پام وکړي.
- یو زده کوونکی دې په ټولګي کې پورته شي د باران د ګټو په هکله او بل دې د باران د زیانونو په هکله خبرې و کړي.
- دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، د ځان له معرفي کولو وروسته دې ووايي چې په ټولګي څه شیان ګوري نومونه دې واخلي.
- دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، خپل ځانونه دې معرفي کړي او بیا دې ووايي چې څو وروڼه لري او هر یو څه کار کوي. خبرې دې پرې وکړي.
- یو زده کوونکی دې پورته شي، کومې میوې چې یې خوښیږي، د هغو نوم دې پر تختې ولیکي او بیا دې هماغه نوم په جمله کې استعمال کړي. که په جمله کې یې څه تیروتنه درلوده، بل زده کوونکی دې ورته سمه کړي.
- یو بل زده کوونکی دې پورته شي د هغه پرنده نوم دې پرتختې ولیکي چې د هغه خوښیږي. بیا دې د هغه نوم په جمله کې استعمال کړي. بیا دې پر تختې خپله جمله ولیکي. نور زده کوونکي دې د هغه تیروتنه ونیسي او سمه دې ولیکي.
زده کوونکي په درو ډلو وویشئ. هرې ډلې ته له لاندې جملو څخه دوې جملې و ټاکئ. بیا دې هره ډله لومړی خپلې جملې ولولي. بیا دې د لاندې جدول کلمې په ځیر سره ولولي. د خپلو جملو د تشوځایونو د ډکولو لپاره دې له جدول څخه کلمې وټاکي او تش ځایونه دې ډک کړي.

| | |
|---|---|
| زده کړې | یوازې د روژنې |
| څلورم | دویم |
| ښوونځي | ورسره ځو. |
| ورسره نه ځو. | چا |
| د کار کولو | د زده کړې |

- له داسې خلکو سره چې نه يې پيژنو، .........

- ښوونځی .............. او روزنې ځای دی.

- په ښوونځي کې نجونې او هلکان ............ کوي.

- حضرت عمر رضي الله عنه د مسلمانانو ...........خليفه و.

- کله چې له ............ ښځه رخصت شو، سيده خپلو کورونو ته ځو.

قرآن کريم د ..............په وسيله په رسول الله ﷺ نازل شوی دی؟

-زده کوونکي په درو ډولو وويشئ. له هرې ډلې ښځه وغواړئ چې د لاندې جدول کلمې ولولي. بيا دې په خپله خوښه درې کلمې وټاکي او په جملو کې دې وکاروي. بيا له زده کوونکو ښځه ښوتنه پورته کړئ چې خپلې ليکل شوي جملې پر تختې وليکي. بل زده کوونکی دې د هغه تيروتنه ونيسي او سمه دې وليکي.

## د بيلګې په توګه:

نازل: قران کريم په حضرت محمد ﷺ باندې نازل شوی دی.

| | | |
|---|---|---|
| نازل | هلکان | ورځ |
| زده کړه | ښه | ځای |
| ډلې | جومات | شهيد |
| ښه | ستونزه | ځانونه |
| قانون | تيز | کور |




زده کوونکي دې د خپل ښوونځي په باره کې څو کرښې وليکي.

# کتاب

**موخه**: د کلمو، جملو سم لوستل، لیکل او د کتاب په ارزښت پوهېدل.

## پوښتنې

- تاسو تېر کال په ښوونځي کې کوم کوم کتابونه ولوستل ؟
- ستاسو څه ډول کتاب خوښېږي ؟

نوم زما کتاب دی — تا ته مې خطاب دی
زه ستا ښه اشنا یمه — تا ته کیسې وایمه
خومره ښې کیسې لرم — شاتو نه خوږې لرم
مشق دې د لیکلو یم — هم دې د لوستلو یم
پام مې په ساتلو کړه — په پاڼو اړولو کړه
پاك مې له گردونو کړه — پام مې په رسمونو کړه
ښکلی مې هر باب دی — نوم زما کتاب دی

(ارواښاد محمد عثمان نژند)

اروښاد محمد عثمان نژند د پښتو ژبې شاعر، لیکوال او د درسي کتابونو مؤلف و. نوموړی د ننګرهار ولایت د سره رود اوسیدونکی و.



## فعالیتونه

- ښوونکي دې لومړی لوست په خپله ورته ووایي. بیا دې څو زده کوونکي په ټولګي کې ووایي.
- زده کوونکی دې په متن کې عام نومونه پیدا او په جملو کې دې وکاروي او بیا دې ووایي. که چا تیروتنه کړې وه، بل زده کوونکی دې ورته سمه ولیکي.
-زده کوونکی دې په دوو ډلو وویشل شي، یو ډله دې د زده کړې د اړتیا په هکله خبرې وکړي او بله ډله دې د کتاب د ګټو په هکله خبرې وکړي، یو استازی دې ولیکي او بیا دې په ټولګي کې ووایي.

## محاوره:

یو زده کوونکی له بل زده کوونکي څخه پوښتنه کوي او هغه ورته ځواب ورکوي.

**لومړی زده کوونکی:**

ستا نوم څه شی دی؟

**دویم زده کوونکی:**

زما نوم کریم الله دی.

ستا د پلار دنده څه شی ده؟

**دویم زده کوونکی:**

زما پلار ښوونکی دی.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د څومره، نوم، زما، ساتل، اړول، ښکلی کلمې معنا او په جملو کې دې وکاروي.

پنځم لوست

# ترافیکي لارښوونې

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، په ترافیکي نښو پوهېدل او هغه په ورځني ژوند کې مراعاتول .









**پوښتنې**

- تاسو کله په ښار کې ترا فیکي نښې لیدلې دي؟

- ستاسو په فکر که چېرې څوک له سړک څخه تېرېږي او د ترافیکو قوانین مراعات نه کړي، څه به وشي؟

**موټر، بایسکلونه، موټرسایکلونه، کراچۍ او پلي خلک چې په ښار کې پر سړکونو تګ را تګ کوي، ځمکني ترافیک ورته وایي او هغه کسان چې بېلابېلې ترافیکي دندې سرته رسوي، د ترافیک پولیسو په نوم یادیږي .**

**ترافیک پولیس پر سړکونو باندې د موټرو او خلکو د تګ راتګ او له سړکونو څخه د تېرېدنې لپاره نښې لري چې خلک د تېرېدلو په وخت کې ترې کار واخلي.**

**ترافیکي نښانې په دوه ډوله دي: څراغونه او بل ترافیکي لوحې.**

**په هغو ښارونو کې چې برښنا وي، څراغونه نصب شوي وي او په لویو لارو کې ترافیکي لوحې لري. څراغونه درې ډولونه لري: سور، شین او ژیړ.**

**کله چې د ترافیکو پر مخ څراغ سور شي، څراغ ته مخامخ ترافیک و دریږي**

**او پلي خلک تیریږي. د سره ځراغ په مخکې موټرونه په سړک د تګ راتګ اجازه نه لري.**

**کله چې ځراغ ژیړ شي، ځراغ ته مخامخ وسایط د حرکت لپاره تیاری نیسي.**

**کله چې ځراغ شین شو، موټر تېرېږي.**

**ټولو ته لازمه ده چې پر ترافیکي نښو او قوانینو باندې ځانونه پوه کړي چې له سړکونو څخه د تېریدلو په وخت کې له خطر سره مخامخ نشي.**

**پلي خلک باید هغه وخت له سړک څخه تیر شي چې هغوی ته مخامخ اشاره شنه وي، یا په هغه وخت کې تیر شي چې په سړک ترافیک نه وي او باید په کراره له سړک څخه تیر شي.**



**فعالیتونه:**

- یو زده کوونکی دې د نوي لوست متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي. که څه ستونزه په لوستلو کې وه، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.

- زده کوونکي دې متن یو ځل په چوپه خوله ولولي. ستونزې دې په نښه کړي او بیا دې له ښوونکي څخه پوښتنې وکړي، ښوونکی دې په لوړ او مناسب اواز پوښتنو ته ځوابونه ووایي.

- یو زده کوونکی دې پورته شي، د لوست متن دې په مناسب غږ ووایي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

- یو زده کوونکی دې د ځراغونو په هکله خبرې وکړي چې وسایط په کوم وخت کې ودریږي او په کوم وخت کې حرکت کوي، ښوونکی دې لارښوونه وکړي.

- څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د (پلي، خلك، تګ راتګ، برښنا) کلمې دې پر تختې ولیکي او په جملو کې دې وکاروي.

- ښوونکي دې دوه زده کوونکي په وار سره پورته کړي او هغوی دې له یوبل سره مرکه وکړي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي .

**لومړی زده کوونکی:**

ستا ترافیکي لارښوونې زده دي؟

**دویم زده کوونکی:**

هو! کله چې په سرک ځمه، د سرک په پلي لاره ځمه چې موټر مې ونه وهي.

او که په ښار کې د سرک له یوې خوا څخه بلې خواته تیریږم، نو ترافیکي اشارو ته ګورم چې کله اشاره شنه وه، زه تیریږم او کله چې سره شوه، بیا نه تیریږم.

**لومړی زده کوونکی:**

اوس ته راته ووایه چې کله په سرک تیریږې او اشاره در باندې زیړه شوه، څه به کوې؟

**دویم زده کوونکی:**

کله چې اشاره زیړه شي د حرکت لپاره تیاری نیسم چې کله اشاره شنه شوه، نو بیا حرکت کوم.

**خیبر:**

ګرانه سپین غر جانه!

ستاسو کور چیرې دی؟

**خیبر:**

زموږ کور په نارنج باغ کې دی .

**سپین غر:**

ښښه غواړم د نارنج باغ په کومه برخه کې دی. زه هلته بلد یم. هلته زما د ماماګانو کور دی؟

**خیبر:**

د اطفایې ترخنګ دی، په هماغه لومړي سرک کې.

**سپین غر:**

ښه، ښه. اوس پوه شوم. اطفایه په ښار کې ډیره ضروري ده ځکه چې کله اور ولګیږي د اطفایې د موټرو په مرسته اورونه مړه کیږي.

سپین غر جانه! ستاسو کور ما لیدلی دی د نجونو د ښوونځي مخامخ دی. زه یوه ورځ کورته راتلم، ته هلته د کور په څنګ کې ولاړ وې.

**خیبر:**

ستا سو پلار مکتب ویلی دی؟

**سپین غر:**

هو! زما پلار داکتر دی او کاکا مې مستری دی.

**خیبر:**

کاکا دې په لیکلو او لوستلو پوهېږي؟

**سپین غر:**

پوهېږي. هغه د میخانیک ښوونځی لوستی دی. سږ کال زما بل ورور هم په مسلکي ښوونځي کې شامل شوی دی. سږ کال په لسم ټولګي کې دی.

**خیبر:**

ماته مې هم پلار ویلي چې تا د میخانیک په ښوونځي کې شاملوم چې د برښنا په څانګه کې زده کړې وکړم.

**سپین غر:**

دا خو ډېر ښه کار دی خو زما د موټرونو له برقي سیستم سره ډېره مینه ده.

- ښوونکي دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې له خپلو پښتنو ټولګیوالو، دوستانو او خپلوانو سره په پښتو ژبه خبرې وکړي او په ټولګي کې دې هم په پښتو خبرې کوي او ښوونکی دې هم ورسره په پښتو خبرې کوي.



**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې ولیکي چې د ژمي، سور او شین څراغ په وخت کې څه وکړو؟

# د نیالګیو کښېنول

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د نیالګیو د کښېنولو پر ګټو پوهېدل.





## پوښتنې

- ستاسو په فکر د نیالګیو کښېنول به څه ګټې و لري؟
- که په یوه سیمه کې ونې نه وي، څه زیانونه به رامنځته شي؟

**هره سیمه د ونو په کښېنولو سره سمسوره او ښکلې کېږي.**

**په کومه سیمه کې چې مېوه لرونکي او بې مېوې ونې ډېرې وي، له مېوو څخه يې د خوړلو او له لرګيو څخه د سون او تعميراتو په برخه کې کار اخلي.**

**موږ بايد په پسرلي کې مېوه لرونکي او زينتي نيالګي کېنوو. دغه راز د و چو ونو پر ځای نور نيالګي کښېنوو. همدغه ونې او ځنګلونه دي چې د سيلابونو، بادونو او ناروغيو مخنيوی کوي.**



## فعالیتونه

- څو زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته لوست له ځان سره ولولي.
- یو زده کوونکی دې د تختې مخې ته ولاړ شي، څو زده کوونکي دې د مېوه لرونکو ونو نومونه ورته ووايي او هغه دې ولیکي.
- یوه ډله زده کوونکی دې په خپله ډله کې د بې میوو ونو د ګټو په باره کې خبرې وکړي، د خپل استازي په واسطه دې ولیکي او بیا دې هغه استازی د ټولګي په مخکې ووايي او بله ډله دې د مېوه لرونکو ونو په باره کې خبرې وکړي او بیا دې هغه معلومات ووايي.
- زده کوونکي دې د پوښتنې او ځواب په ډول دغه پوښتنې سرته ورسوي.

- لومړی زده کوونکی: د مېوه لرونکو نیالګیو کښېنول کومې ګټې لري؟
- دویم زده کوونکی: د مېوه لرونکو نیالګیو کښېنول سیمه سمسوره وي. هوا پاکوي، مېوه ترې لاس ته راځي.
- لومړی زده کوونکی: کله مو کوم مېوه لرونکی او یابې مېوې نیالګی کښېنولی دی؟
- دویم زده کوونکی: هو پروسږ کال ما او ښکلا په خپل کور کې د منو دوه نیالګي کښېنول او همېشه اوبه ورکوو.

| لغت | معنا |
|---|---|
| کښېنول | غرص کردن |
| سیمه | منطقه |
| ښکلی | زیبا |
| سمسوره | سرسبز |
| پلوري | می فروشد |



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په لارو او باغونو کې د مېوه لرونکو او بې مېوو ونو نومونه ولیکي.

# چاپېریال

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د چاپېریال په ارزښت پوهېدل او د هغه پاک ساتل.





## پوښتنې

- ایا کله مو د چاپېریال په پاکوالي کې برخه اخیستې ده؟
- ستاسو په فکر د چاپېریال پاک ساتل به څه گټې ولري؟

**چاپېریال زموږ د اوسېدو شاوخوا سیمې ته وایي. که چیرې زموږ چاپېریال پاک او سوتره وي، زموږ د اوسیدلو شاو خوا سیمې سمسورې، ونې او گلان په کې وي. له یوې خوا به زموږ د شاو خوا هوا پاکه وي او له بلې خوا به د ناروغیو مخنیوی وشي. موږ باید خپل چاپېریال پاک وساتو، په چمنونو کې ونه گرځو. د کور او ښوونځي په انگړ کې کاغذونه ونه غورځوو او خپل کور او ټولگی پاک وساتو.**

## فعالیتونه

- ښوونکی دې یو ځل متن ورته ولولي چې زده کوونکي د کلمو او جملو په سم تلفظ او لوستلو پوه شي.
- څو زده کوونکي دې متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
- یو زه زده کوونکی دې پرتختې د چاپېریال کلمه ولیکي، بیا دې د چاپېریال په باره کې د هر زده کوونکي نظر وپوښتي او نور دې ورته متوجې وي.
- زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي، هر ډله دې په وار سره د چاپېریال د ګټو او د چاپېریال د ککړتیا د زیانونو په باره کې خپل نظرونه سره شریک او بیا دې د هرې ډلې استازی په ټولګي کې د خپلې ډلې نظرونه ووایي.
- زده کوونکي دې د یوه ښکلي چاپېریال په هکله څو کرښې ولیکي او بیا دې په ټولګي کې ووایي.
- دوه زده کوونکي دې په خپل منځ کې له یو بل سره محاوره وکړي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي. بیا دې دوه نور زده کوونکي پورته شي او له یو بل څخه دې پوښتنې وکړي. که چیرې یې په محاوره کې ګرامري تیروتنه وکړه، بل زده کوونکی دې ورته سمه کړي. د اړتیا په وخت ښوونکی کولای شي چې ستونزې یې ورته حل کړي.
- زده کوونکي دې د لاندې جدول کلمې په ځیر سره وګوري او له دې کلمو څخه دې د لاندې جملو تش ځایونه په مناسبو کلموسره ډک کړي.

| | |
|---|---|
| د اوسیدنې | سمسوره او پاک |
| ناروغیو | نه سمسوره کیږي |
| بادونو | د سیلابونو |
| چاپیریال | ښوونځي |

چاپیریال زموږ ..............شاوخوا سیمو ته وایي.

سمسوره ........... د ناروغیو له خپریدو څخه په امن کې وي.

همدغه ونې او ځنګلونه دي چې ........... او بادونو مخه نیسي او د ناروغیو مخنیوی کوي.

هر................. د ونو په کینولو سره ښکلې کیږي.

## محاوره:

په وار سره په څلورو زده کوونکو باندې محاوره وکړئ.

**لومړی زده کوونکی:**

ګرانه ټولګیواله! چاپیریال څه ته وایي؟

**دویم زده کوونکی:**

زموږ د استوګنې شاوخوا سیمو ته چاپیریال وایي او باید پاک یې وساتو. ځکه سمسور او پاک چاپیریال ساتل د هر چا دنده ده.

**لومړی زده کوونکی:**

تاسو تیر کال په خپل باغ کې څومره ونې کینولي دي او څومره ګلان مو کرلي دي؟

**دویم زده کوونکی:**

سمه خبره دې وکړه. پرو سږ کال ما په خپل باغ کې د مڼو، زردالو، الوچو ونې کینولې او ترخنګ مې ګلان هم وکرل .

**لومړی زده کوونکی:**

که چیرې یوه سیمه پاکه او سمسوره وي، نو هلته به ناروغۍ هم کمې وي.

**دویم زده کوونکی:**

دا خو ډېر ښه کار دی چې مونږ او تاسو خپل د استوګنې شاوخوا سیمه پاکه او سمسوره وساتو.

**لومړی زده کوونکی:**

زده کوونکی هم باید لوست ووایي او هم کورنۍ دنده ولیکي او کله چې وزګار شي، باید د کور په پاکوالي کې ونډه واخلي.

ښاغلی ښوونکی! زده کوونکو ته په ټولګي کې دنده ورکړئ چې په ډله کې متن ولولي.

په هغه کې دې عام نومونه په شریکه په نښه او په جملو کې دې وکاروي. بیا دې یوتن په ټولګي کې ولولي.

- زده کوونکي دې له لاندې عبارتونو څخه بشپړې جملې په خپلو کتابچو کې جوړې کړي او بیا دې د هغوی سم شکل په ټولګي کې ووایي.

ښوونځی دی د پوهې د زده کړې لپاره ښکلی ځای

ښوونځی په زړه پورې د زده کړې لپاره ځای دی.

| لغت | معنا |
|---|---|
| ونې | درخت |
| چاپیریال | محیط زیست |



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورکې د یوه پاک او سمسور چاپېریال د ګټو په په باره کې څو کرښې و لیکي.

اتم لوست

# ښه خواړه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل د ښوخوړو په ګټو او اهمیت باندې پوهیدل.





**پوښتنه**

- ستاسو په فکر ښه خواړه به څه ګټې ولري؟

**ټول پخیدونکي خوراکي شیان باید لومړی په پاکو اوبو پریمنځو او بیا یې پاخه کړو.**

**خام او پاخه سابه بدن ته ډېره ګټه رسوي. خام سابه باید تر خوراک د مخه پاک او بیا وخوړل شي.**

**دا کار به د بدن یو شمېر اړتیاوې پوره کړي، زموږ بدن به د ناروغیو په مقابل کې له ډېرو میکروبونو څخه خوندي پاتې شي.**

**ښه خواړه هغه دي چې بدن ته ګټه رسوي. موږ باید یوازې یو ډول خواړه هره ورځ و نه خورو.**

## فعالیتونه

- زده کو ونکي دې له ښوونکي وروسته متن له ځان سره ولولي.
- زده کوو نکي دې له متن څخه یو پاراګراف په خپله خوښه په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې یو زده کوونکی خپله لیکنه پر تختې ولیکي. بل زده کوونکی دې د هغه تېروتنې اصلاح کړي.
- زده کوونکي دې پر ډلو ووېشل شي. یوه ډله د ې د پاکو خوړو او بله ډله دې د بېلابېلو خوړو د ګټو په اړه جملې ووایي او بیا دې د خپل استازي په واسطه جملې پر تختې ولیکي.
- څو زده کوونکي دې د پاکو اوبو په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
- یو زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي، ځان دې معرفي کړي او د خپلې خوښې موضوع په اړه دې خبرې وکړي.
- دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، د ځان له معرفي کولو وروسته دې د خوړو په باره کې خبرې اترې وکړي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| اړتیا | ضرورت |
| ژوند | زنده ګی |
| تعادل | برابري |

## کورنۍ دنده

یو شمېر زده کوونکي دې په کورونو کې د پاکو خوړو د ګټو او څنې دې د ناپاکو خوړو د زیانونو په هکله څو کرښې ولیکي.

نهم لوست

# روغتیا ته پاملرنه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د روغتیا په ارزښت او ګټو پوهېدل.





## پوښتنې

- ستاسو په فکر روغتیا ته پاملرنه څه ګټې لري؟
- که څوک خپلې روغتیا ته پام ونکړي څه به و شي؟

**روغتیا لوی نعمت دی. که بدن روغ وي، لوست زده کېږي او لوبې خوند کوي. د روغ بدن په قدر هغه خلک پوهېږي چې یو ځل ناروغه شوي وي. پاک او ډول، ډول خواړه له روغتیا سره مرسته کوي. سپورټ او بدني روزنه بدن غښتلی کوي.**

**موږ باید خپلې روغتیا ته پام وکړو، د ناروغۍ پر مهال ژر تر ژره ډاکټر ته لاړ شو.**

## فعالیتونه

- ښوونکی دې یوځل متن په مناسب اواز زده کوونکو ته ولولي او ټول زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.
- زده کوونکي دې متن ولولي او بیا دې څو کسه په وار سره د ټولګي په مخ کې ولولي.
- څو زده کوونکي دې په وارسره د روغتیا د ساتلو په هکله خبرې وکړي.
- یو زده کوونکی دې پر تختې د روغتیا کلمه ولیکي او څو نور زده کوونکي دې په وار سره د روغتیا په باره کې یوه یوه جمله ووایي او هغه دې پرتختې ولیکي.
- دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د ځان له معرفي کولو وروسته دې د روغتیا او د هغې د ګټو په اړه له یو بل سره مرکه وکړي.
- درې زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو زده کوونکی دې د (روغ، بدن، لوبې، خوند، ناروغ، غښتلی، ژر تر ژره) کلمې پر تختې ولیکي. دویم زده کوونکی دې په جملو کې وکاروي، پاتې زده کوونکي دې د تختې له مخې په کتابچو کې ولیکي.
- په زده کوونکو باندې لاندې محاوره وکړئ

**زده کوونکی:**

ستا ورور چیرې ښوونکی دی؟

**زده کوونکی:**

په کابل ښار کې د یوه ښوونځي ښوونکی دی.

اوس لومړی زده کوونکی کیني او بل زده کوونکی دې پورته شي او له دویم زده کوونکي څخه دې پوښتنې وکړي.

**زده کوونکی:**

ستا د ماما کور په کابل کې دی؟

**زده کوونکی:**

هو! زما د ماما کور په کابل کې دی، هغه په کابل کې داکتر دی.

**زده کوونکی**:

د څه شی داکتر دی؟

**زده کوونکی**:

هغه په کابل کې په یو روغتون کې د سترګو داکتر دی.

**زده کوونکی**:

زه هم غواړم چې د سترګو داکتر شم. ته څه شی غواړې؟

**زده کوونکی**:

زه غواړم چې ښوونکی شم.

## دویمه محاوره:

دوه نور زده کوونکي دې پورته شي د نورو زده کوونکو په څیر دې له یو بل څخه پوښتنې وکړي او بل دې ورته ځواب ووایي.

**لومړی زده کوونکی**:

تاسو پرونۍ کورنۍ دنده سرته رسولې ده؟

**دویم زده کوونکی**:

بلې. ماخپله کورنۍ دنده لیکلې ده. زه هره ورځ خپله کورنۍ دنده سرته رسوم او د نن کار سبا ته نه پرېږدم.

**لومړی زده کوونکی**:

تاسو څنګه؟

**دویم زده کوونکی**:

ما خو خپله کورنۍ دنده سرته رسولې ده، خو په ریاضي کې د یوې پوښتنې ځواب را څخه پاتي شوی دی او بس.

**زده کوونکی**:

نن له غرمې وروسته زموږ کورته راشه. زه به هم درسره مرسته وکړم او سوالونه به په شریکه حل کړو.

**زده کوونکی:**

دا خوبه ډیره ښه شي. یوه پوښتنه درڅخه کوم. ته خو وربانډې نه خپه کیږي؟

**زده کوونکی:**

ولې به خپه کیږم، مهرباني وکړه ویې وایه.

**زده کوونکی:**

ستا مشر ورور ددې ښوونځي په څوم ټولګي کې دی؟

**زده کوونکی:**

زما ورور؟

**زده کوونکی:**

هو ستا ورور یادوم.

**زده کوونکی:**

زما ورور په اتم ټولګي کې اول نمره دی. زه هم غواړم چې سږ کال په ټولګي کې اول نمره شم.

ښوونکی دې په خبرو اترو کې د زده کوونکو تیروتنو ته پام وکړي او تیروتنې دې ورته سمې کړي چې زده کوونکي سم تلفظ زده کړي. په پای کې دې ښوونکی ټول زده کوونکي تشویق کړي او چکچکې دې ورته وکړي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| ګټه | فایده |
| د بېلګې په توګه | به طور نمونه |



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې د روغتیا په هکله څو جملې ولیکي او په بل درسي ساعت کې دې په ټولګي کې ووایي.

# د پسرلي ترانه

**موخه**: د شعر سم لوستل، ليکل او د شعر په معنا پوهېدل.





پوښتني

- په تاسوکې به څوک د پسرلي د مياشتو نومونه واخلي؟
- ستاسو په فکر زموږ په هېواد کې کومې مېوې پيدا کيږي؟

پسرلی د کال لومړی فصل دی. پسرلی درې مياشتې دی (حمل، ثور او جوزا). په پسرلي کې هوا پاکه او تازه وي. پسرلی د کار وخت دی. د پښتو ژبې شاعر او ليکوال د پسرلي په باره کې يو شعر ويلی دی چې لاندې يې لولو.

| | |
|---|---|
| زېری چې بهار راغــی | ژوند سره سينګار راغی |
| سر شو په نغمـو بلبـل | ګل ته په چغار راغـــی |
| يوم په لاس مليار د باغ | بڼ ته په تلوار راغـــی |
| يو د نوي کال سپرلــی | بل مو په روزګار راغـی |
| دا وايي روغمن موږ تـه | وخت د افتخار راغـــی |

(ارواښاد غلام حضرت روغمن)

اروابناد غلام حضرت روغمن د پښتو ژبې شاعر، لیکوال او د پښتو درسي کتابونو مولف و، نوموړی د ننګرهار ولایت د ښېوې ولسوالی د شګي د قریي اوسیدونکی و.



## فعالیتونه

- څو زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته لوست په لوړ او مناسب غږ ولولي او ښوونکی دې ورته ستونزې حل کړي.
- زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. یوه ډله دې په پسرلي کې د مېوو او بله ډله دې د سبو نومونه واخلي. بیا دې د دواړو ډلو استازي د نوموړو شیانو نومونه پر تختې ولیکي، ښوونکی دې څارنه وکړي چې ټول زده کوونکي په نظر ورکولو کې ونډه واخلي.
- بله ډله دې په وارسره د پسرلي د ګټو په هکله خبرې وکړي.
- څو زده کوونکي دې په دې هکله خبرې وکړي: که چیرې آسمان وریځ شي د بړلی او تېز باران د کیدو نښې را څرګندې شي، په څه ډول کولای شو چې ځانونه ترې وساتو؟ په دې هکله دې ښوونکي ور سره مرسته وکړي.
- یو زده کوونکی دې په ټولګي کې پورته شي، د پسرلي د میاشتو نومونه دې واخلي او پر تختې دې ولیکي.
- دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي. لومړی دې ځان معرفي کړي. وروسته دې هر یو ووایي چې د کال کوم فصل یې خوښېږي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| یوم | بېل |
| ملیار | باغوان |
| بڼ | باغ |



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کال د لومړي موسم د میاشتو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# كال

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل، د کال د موسمونو او مياشتو پېژندل.





## پوښتنې

- څوک به په پورتنيو انځورونو کې د پسرلي موسم راوښيي؟
- په تاسوکې به څوک د کال د فصلونو نومونه په ترتيب سره واخلي؟

**يو کال څلور موسمه لري. پسرلی، دوبی، منی او ژمی.**

**پسرلی درې مياشتې لري: حمل، ثور او جوزا. پسرلی په زړه پورې هوا لري او د کار او فعاليت موسم دی. پسرلی ښکلی موسم او پاکه هوا لري.**

**په پسرلي کې بارانونه ډېر وي، بايد د تېز باران په وخت کې امن ځای ته ځان ورسوو. د خوړونو او پلونو لاندې ونه درېږو چې په داسې وختونو کې د سېلابونو د راوتلو امکان وي.**

**دوبی هم درې مياشتې لري: سرطان، اسد او سنبله. په دې موسم کې هوا توده وي او مېوې پخېږي.**

**منی هم درې مياشتې لري: ميزان، عقرب او قوس. په دې موسم کې مېوې ټولېږي او ټول خلک د ژمي لپاره تياری نيسي.**

**ژمی هم درې مياشتې لري:جدي، دلو او حوت. په دې موسم کې هوا ډېره سړه وي او په ځينو سيمو کې واوره اوري. موږ بايد د سړو د مخنيوي لپاره له تودو جامو څخه کار واخلو.**

- ښوونکی دې یو ځل متن ولولي چې زده کوونکي د کلمو او جملو په سم تلفظ او لوستلو پوه شي.
- څو زده کوونکي دې متن له ښوونکي وروسته له ځانه سره ولولي. بیا دې دوه زده کوونکي په مناسب غږ په ټولګي کې ولولي او پاتې دې ورته ځیر شي، ښوونکی دې ورسره په لوستلو کې مرسته وکړي.
- دوه زده کوونکي دې په ټولګي کې پورته شي او دا لاندې مرکه دې سرته ورسوي.

پوښتنه: د کال لومړی موسم کوم دی؟

ځواب: د کال لومړی موسم پسرلی دی.

پوښتنه: پسرلی څو میاشتې دی؟

ځواب: پسرلی درې میاشتې لري: حمل، ثور او جوزا.

پوښتنه: پسرلی څه ډول موسم دی؟

ځواب: پسرلی ښه هوا لري او د کار او فعالیت موسم دی.

- زده کوونکي دې دوه، دوه شي او لاندې جملې دې له یو بل سره د سوال او ځواب په ډول ووایي.

- په دوبي کې هوا څنګه وي؟
- د اوړي موسم څو میاشتې لري؟
- په پسرلي کې هوا څنګه وي؟

## محاوره:

له زده کوونکو څخه دوه داسې زده کوونکي پورته کړئ چې کله پورته شوي نه وي. په هغوی باندې لاندې محاوره سرته ورسوئ او نور دې ورته غوږ ونیسي.

**لومړی زده کوونکی:**

ته راته ووایه چې د کال په ټولو فصلونو کې دې کوم فصل خوښیږي؟

**دویم زده کوونکی:**
زما په ټولو فصلونو کې د اوړي فصل خوښیږي، ځکه چې په دې فصل کې هوا توده وي او میوې پکې پخیږي. ستا کوم فصل خوښیږي؟
**لومړی زده کوونکی:**
زما هم د اوړې فصل خوښیږي، خو ګوره وروره! د ژمي فصل هم ښه دی. په دې فصل کې هوا یخیږي او په یخو ولایتونو کې په لوړو غرونو واورې اوري. دا واورې د زراعت لپاره ډیره ګټه رسوي.
**دویم زده کوونکی:**
دا ټول فصلونه د انسانانو د ګټو لپاره دي. مثلاً په پسرلي کې ونې او بوټي شنه کیږي او ګلان کوي، میوې نیسي او ځینې میوې د ثور او جوزا په میاشتو کې پخیږي.
تاسو د میوه دارو ونو باغ لرئ.
**لومړی زده کوونکی:**
موږ یو کوچنی باغ لرو خو ډیر لوی نه دی.
ما سږ کال د خپل باغ په باغچه کې ډول ډول ترکاري هم کرلي ده. ځکه چې ترکاري د وجود لپاره ډیره ګټه لري .
- یو زده کوونکی په ټولګي کې پورته کړئ د هیواد د بیرغ رنګونه دې ووایي او بیا دې بل زده کوونکی پورته شي دا درې رنګونه دې پرتختې ولیکي او هر رنګ دې په جمله کې استعمال کړي. نور زده کوونکي دې د هغه تیروتنه ونیسي. که تیروتنه یې کړې وي، سمه دې ولیکي.
- زده کوونکو ته ووایئ چې په خپلو کتابچو کې د کال د هر موسم په هکله چې یې خوښ وي، دوه دوه جملې په خپله خوښه ولیکي او بیا دې خپلې لیکل شوي جملې خپلو ټولګیوالو ته ووایي.
- دوه زده کوونکي دې په وارسره یوه کیسه و کړي. که کله یې له حیواناتو څخه په کوم یو باندې مهرباني کړې وي او مرسته یې ورسره کړې وي.
یو زده کوونکی دې خپلو ټولګیوالو ته له ترافیکي خطرونو څخه د ځان ساتنې په هکله چې په مخکې لوست کې وویل، خبرې وکړې او نور دې ورته غوږ ونیسي.

- څو زده کوونکی دې په وارسره د خپل کور د باغچې په هکله خبرې وکړې چې په هغې کې يې څه شی کرلي دي او ولي يې کرلي دي او ګټې يې څه شی دي؟
- يو زده کوونکی دې له بل سره محاوره وکړي او د هغو کارونو پوښتنه دې وکړي چې په کورکې يې سرته رسوي.
- ټول زده کوونکي دې خپلې کتابچې راوباسي او هر يو دې په هغې هغه کارونه وليکي چې پرون يې په کور کې کړي دي اويا يې له مور او پلارسره په کارونو کې مرسته کړي وي. بيا دې څوکسه خپلو ټولګيوالو ته ووايي.
زده کوونکی دې لاندې تش ځايونه ډک کړي:
- زه مکتب ته ......
- زما د ورور نوم ............ دی

- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې له خپلو پښتنو ټولګيوالو دوستانو او خپلوانو سره په پښتو خبرې وکړي او په ټولګي کې دې هم په پښتو خبرې کوي او ښوونکی دې هم ورسره په پښتو خبرې کوي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| ژمی | زمستان |
| منی | خزان |
| انځور | عکس |
| دوبی | تابستان |



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د متن په مرسته د کال د دولسو مياشتو نومونه وليکي.

## دولسم لوست

# له ټولګي سره مینه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، له ټولګي او ټولګیوالوسره مینه پیداکول





### پوښتنې

- تاسو په ښوونځي کې کوم کوم کارونه ترسره کوئ؟
-له ټولګي سره د زده کوونکو مینه څه ګټې لري؟

**ښکلا او رشاد خور او ورور دي. هغوی له ټولګي سره مینه لري او هېڅکله غیر حاضري نه کوي. ښکلا غواړي په را تلونکي کې ډاکټره شي او رشاد له انجنیرۍ سره مینه لري .**

**دوی د خپلو ښوونکو لوست ته غوږ نیسي. په کورونو کې کورنۍ دندې سرته رسوي. دوی تل خپل ورځني لوستونه زده کوي، ځکه چې د زده کړې په واسطه خپل ځان او هېواد ابادولی شي. که څوک په خپلو لوستونو کې زیار ونه باسي، هغه له خپلو ټولګیوالو وروسته پاتې کیږي.**

## فعالیتونه

- زده کو ونکي دې متن له ښوونکي وروسته په وار سره ولولي او ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.
- دوه زده کوونکي دې په وار سره پورته شي، یو له بل څخه دې دا لاندې پوښتنه وکړي.
  - لومړی زده کوونکی: ښکلا او رشاد هره ورځ په کورونو کې څه کوي؟
  - دویم زده کوونکی: په خپلوکورونو کې خپلې کورنۍ دندې سرته رسوي.
- دوه زده کوونکي دې په ټولګي کې پورته شي، یو دې د ښوونځي د ګټو په اړه پوښتنې وکړي او هغه بل دې ورته ځواب ورکړي. ښوونکی دې د هغو جملې ورته اصلاح کړي.

دوه زده کوونکي دې په ټولګي پورته شي. یو دې له یادو له بل څخه دښوونځي د ګټو په هکله پوښتنې وکړي اوهغه بل دې ورته ځواب ورکړي. ښوونکی  دې د هغو جملې ورته اصلاح کړي.

- لومړی زده کوونکی: ته په کورکې څه کوې؟
- دویم زده کوونکی: زه په کورکې خپله کورنۍ دنده سرته رسوم او بیا له پلارسره په کارونو کې مرسته کوم او کله کله له خپلې مورسره هم مرسته کوم. ته څنګه:
- لومړی زده کوونکی: زه هم په کور کې له مور او پلار سره مرسته کوم.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| ورځني | روزمره |
| هېواد | وطن، ټاټوبی |
| زیار | زحمت |



## کورنۍ دنده

څو زده کوونکي دې د ټولګي په هکله او څو نور دې د زده کړې په هکله خپل معلومات په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د اختر ورځ

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د نېکمرغه او مبارکو ورځو په لمانځلو پوهېدل.






## پوښتنې

- په پورتنیو انځورونو کې څه وینئ؟ خبرې پرې وکړئ.
- مسلمانان په کال کې څو اخترونه لري؟

**مور مسلمانان په کال کې دوه اخترونه لرو. یو ته کوچنی او بل ته لوی اختر وايي.**

**په اختر کې هر څوک خوشحاله وي. نوي یا پاک کالي اغوندي. نارینه د اختر د لمانځه لپاره لویو جوماتونو او عیدګاو ته ځي. خلک په اختر کې د ګاونډیانو او خپلوانو کورونو ته ځي او د اختر مبارکي ورکوي. نجونې د اختر په شپه په لاسونو او پښو نکریزې ږدي. که څوک په دې مبارکو ورځو کې یو له بل سره خپه وي، د یو بل کورنو ته ورځي، د اختر مبارکي ور کوي او پخلا کیږي.**

## فعالیتونه

- ښوونکی دې یوځل متن په مناسب اواز زده کوونکو ته ولولي او ټول زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.
- څو زده کوونکي دې لوست له ښوونکي وروسته په لوړ او مناسب غږ ولولي او ښوونکی دې ورسره په لوستلو کې مرسته وکړي.
- څو زده کوونکي دې په ټولګي کې د اختر د ورځو په هکله خبرې وکړي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.
- څو زده کوونکي دې په ټولګي کې پورته شي او هر یو دې ووایي چې د اختر په ورځو کې څه کوي.
- یو زده کوونکی دې په ټولګي کې پورته شي، د اختر په هکله دې یوه جمله پر تختې ولیکي او هغه دې ولولي.که په لیکلو کې یې تېروتنه کړې وي، بل زده کوونکی دې هغه ورته سمه کړي.
- څو زده کوونکي دې د اختر د مبارکو ورځو په هکله څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې په ټولګي کې ووایي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| کالي | جامې |
| ګاونډیانو | همسایګانو |
| نکریزې | خینه |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کورو نو کې د اختر په هکله څو جملې ولیکي او بیا دې په بل درسي ساعت کې خپلو نورو ټولګیو الو ته ولولي.

# خپلواکي

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د خپلواکۍ په ارزښت پوهېدل





**پوښتنې**

- پورتنی عکس د چا دی؟
- افغانان هر کال ولې د خپلواکۍ جشن لمانځي؟

**خپلواکي د انسان طبیعي حق دی. پر دغه حق باندې هېڅوک د تیري حق نه لري. وګورئ الوتونکي په هوا او ځنګلونو کې او ځاروي په غرونو، د ښتو او ځنګلونو کې څومره په زړه پورې ازاد ژوند لري.**

**افغانان، ښځې او نارینه پر خپل هېواد او خپلواکۍ مین خلک دي. هغوی د هېواد د خپلواکۍ ساتنه کوي. زموږ د هېواد نارینه وو او ښځو د خپلواکۍ په ګټلو کې خپلې وینې تویې کړې دي او هېواد یې په خپلو وینو ساتلی دی.**

## فعالیتونه

-زده کوونکي دې متن له ښوونکي وروسته له ځان سره ولولي او ښوونکی دې ورسره په لوستلو کې مرسته وکړي.

- څو زده کوونکي دې پورته شي، له یوبل څخه دې د خپلو اکی په اړه پوښتنه وکړي او بل دې ورته ځواب ورکړي.

- دوه زده کوونکي دې په ټولګي کې پورته شي. یو دې لاندې پوښتنې وکړي او بل دې ورته ځوابونه ورکړي. نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.

لومړی زده کوونکی: خپلواکي د انسان څه ډول حق دی؟

دویم زده کو ونکی:...

لومړی زده کوونکی: الوتونکي او څاروي په غرو، دښتو او ځنګلونو کې څه ډول ژوند لري؟

دویم زده کو ونکی: ...

- یو زده کوونکی دې تختې ته را شي، د خپلواکی کلمه دې پرتختې ولیکي، نور دې په وارسره د خپلواکۍ په هکله خپل نظر ووایي او هغه دې پرتختې ولیکي او ودې وایي.

که یې په لیکلو کې تېروتنه وکړه، بل زده کوونکی دې ورته سمه کړي.

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| خپلواکي | ازادي |
| الوتونکي | مرغان |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې دغه لاندې پوښتنه دکورنۍ دندې په توګه ځواب کړي.

خپلواکي څه معنا لري؟

زده کوونکي دې په دې اړه درې درې کرښې ولیکي؟

پنځلسم لوست

# د ماشوم حقونه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د ماشوم په حقونو پوهېدل





## پوښتنې

- ستاسو په فکر ماشوم په خپل پلار او مور څه حقونه لري؟
- ستاسو په فکر د ماشوم په حقونو کې څه شامل دي؟

**ماشومان د را تلونکي ځوانان دي. که ښه وروزل شي د خپل ځان، کورنۍ او هېواد لپاره خدمت کولای شي. ماشوم پر خپلې کورنۍ حق لري چې ښه نوم پرې کېږدي او درس پرې ولولي. ماشومان د لباس، خوړو او زده کړې حق لري. ماشومانو ته د خپل چاپېریال په هکله ډول، ډول پوښتنې پیدا کېږي. د ماشومانو خبرو ته باید غوږ ونیول شي او پوښتنو ته یې ځواب ورکړل شي. د ماشومانو د روزنې لپاره باید سم چاپیریال برابر شي او له خپلو حقونو څخه برخمن شي. همدغه نجونې او هلکان دي چې زده کړې کوي او په راتلونکې کې هېواد ته په بېلابېلو لارو خدمت کوي.**

## فعالیتونه

- زده کوونکي دې متن یو له بل سره ولولي، ستونزمنې کلمې او جملې دې په نښه کړي او ښوونکی دې ورسره مرسته و کړي.
- زده کوونکي دې د ماشوم د حقونو په هکله خبرې شریکې کړي، یو استازی دې د کاغذ پر مخ ولیکي او بیا دې د ټولګي په مخ کې ووایي.
- یو زده کوونکی دې تختې ته لاړشي، بل دې ورته د متن یو پاراګراف ووایي او هغه دې پرتختې ولیکي، بل زده کوونکی دې د هغه تېروتنه ونیسي.
- څو زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي مخې ته راشي، لوست دې په وارسره ولولي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.
- دوه زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، د ځان له معرفي کولو وروسته دې ووایي چې د یو ماشوم په توګه له لویانو څخه څه غوښتنې لري؟

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| راتلونکې | اینده |
| چاپېریال | شا اوخوا |
| ماشوم | طفل |
| کورنی | فامیل |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې لاندې کلمې دې په خپلو کتابچو کې ولیکي او په جملو کې دې استعمال کړي. (ماشوم، ماشومان، حقونه، کورنی، غوږ)

# شپاړسم لوست

# سوله

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د سولې په ارزښت باندې د زده کوونکو پوهول





**پوښتنې**

- ستاسو په فکر که په یوه ټولنه کې سوله نه وي، څه زیانونه به رامنځته شي؟
- څوک کولای شي د جګړې د زیانونو په هکله څه ووایي؟

**سوله د ژوند اړتیا ده. په سوله کې هر څوک کولای شي په امن کې کار وکړي. په سوله کې ښوونځي خلاص وي او زده کوونکي خپلې زده کړې کوي. په سوله کې پرمختګ وي، امن وي او هېواد آبادېږي او په پایله کې ټولنې د هر راز نیکمرغۍ سره مخ کیږي. په امن او دوستۍ کې مینه او محبت زیاتیږي او په هېواد کې پرمختګ او ابادي رامنځته کیږي.**

## فعالیتونه

- ښوونکی دې يوځل متن په مناسب اواز زده کوونکو ته ولولي او ټول زده کوونکي دې ورته غوږ ونيسي.

- څو زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته لوست له ځان سره ولولي او نور دې ورته غوږ ونيسي، ښوونکی دې ورته ستونزې حل کړي.

- زده کوونکي دې په دوو ډلو وويشل شي. يوه ډله دې د امن د ګټو او بله ډله دې د ټولنې د پرمختګ په هکله خپل نظرونه سره شريک کړي. يو زده کوونکي دې هغه وليکي او بيا دې د هرې ډلې استازی نظرونه د ټولګي په مخکې ووايي.

- دوه زده کوونکی دې پورته شي، يو دې د سولې د ګټو په هکله پوښتنه وکړي او بل دې ځواب ورکړي، نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونيسي.

- هر زده کوونکی دې په خپله کتابچه کې د سولې د ګټو په هکله يوه يوه جمله وليکي او بيا دې څوتنه نور په ټولګي کې ووايي.

- يو زده کوونکی دې تختې ته ورشي، پرتختې دې د سولې کلمه وليکي. بيا دې يو يو زده کوونکی خپل نظر په ترتيب سره پرتختې وليکي او هر نظر دې ټولګيوالو ته ووايي.

- زده کوونکوته ووايئ چې د لاندې چوکاټ له کلمو څخه سمې جملې په خپلو کتابچو کې جوړې کړي او بيا دې څوتنه د خپلو ټولګيوالو په مخ کې ووايي:

| زه | ښوونځي | دوي | ورځ | ته ځم | هره |
|---|---|---|---|---|---|
| دا | زموږ | کاکا | په | دی | هغه |
| دا | زما | زما | خور | ښوونکی | دی |
| جميله | د هغه | کتابچه | ده | ده | خور |

## محاوره

دوه داسې زده کوونکي د محاورې لپاره پورته کړئ چې کله په ټولګي د محاورې لپاره پورته شوي نه وي.

**لومړی زده کوونکی:**

ملګریه! ستا پلار ژوندی دی که ژوندی وي، چیرې کار کوي؟

**دویم زده کوونکی:**

زما پلار ژوندی دی. بزګر دی. خپله ځمکه کري.

**لومړی زده کوونکی:**

ستا وروڼه څه کار کوي؟

**دویم زده کوونکی:**

زما مشر ورور ډاکتر دی. بل ورور مې رنګمال دی او دریم زه خپله یم. دوه خویندې مې هم په ښوونځي کې دي او یوه ډاکتره ده. ستاسو کور چیرې دی؟

**لومړی زده کوونکی:**

زموږ کور د روښان کوټ د لویې ویالې په څنګ کې دی.

## دویمه محاوره

**لومړی زده کوونکی:**

ته راته ووایه چې یو ښه زده کوونکی چا ته ویلای شو؟

**دویم زده کوونکی:**

ښه زده کوونکی هغه دی چې هر ورځ خپل ښوونځي ته راشي او د ښوونکي خبرو او لوست ته غوږ ونیسي. لوست ولولي او کورنۍ دنده په کور کې ولیکي. اوس ته راته ووایه چې ښه زده کوونکی چاته وایي.

**لومړی زده کوونکی:**

ښه زده کوونکی همداسې وي لکه تا چې وويل او دغه راز ښه زده کوونکي د مشرانو درناوی کوي. مشرانو ته سلام اچوي.

**دويم زده کوونکی:**

هو امن ښه شی دی. په امن کې خوشحالي منځته راځي. په امن کې وطن آباديږي. په امن کې خلك زده کړې کولای شي او مکتبونه پرانيستي وي.

**لومړی زده کوونکی:**

ته وګوره زموږ په هيواد کې ډېر ځوانان معيوب دي. معيوب ځوانان هم زده کړې کولای شي، بايد له هغوی سره مرسته وکړو.

**دويم زده کوونکی:**

هو! موږ بايد معيوبو ته ډير درناوی ولرو. ځکه هغوی هم زموږ د هيواد خلك دي. هغوی هم کار او زده کړه کولای شي. خلك بايد له هغوی سره مرسته وکړي. کار ورته پيدا کړي.

**لومړی زده کوونکی:**

هو! که هغوی ته کارپيدا شي، نو خپله به کار کوي او خپل کور به په خپله ساتي له احتياج څخه به خلاص وي.

| **لغت** | **معنا** |
|---|---|
| وژل | کشتن |
| امن | امنيت |
| کرکه | نفرت |




زده کوونکي دې د سولې د ارزښت په هکله څو جملې وليکي.

## اووه لسم لوست

# جرگـه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د جرگې په ارزښت پوهېدل





### پوښتنې

- ستاسو په فکر په پورتني انځور کې څه شی لیدل کیږي؟
- ستاسې په ولس کې خلك خپلې لانجې څه ډول هواروي؟

**جرگه زموږ له پخوانیو دودونو څخه یو دود دی. د جرگې دنده دا ده چې د خلکو ستونزې هوارې کړي. د جرگې پرېکړې تر ډیرې کچې عملي بڼه لري. جرگه د دوو تنو، دوو کلیو او د دوو قومونو ترمنځ لانجې حل کوي. کله، کله ملي ستونزې هم د جرگې له لارې هواریږي.**

**په جرگه کې د کلیو، ولسوالیو د سپین ږیرو او قومي مشرانو د گډون په وسیله ستونزې حلیږي. جرگه له پوهو او جرگه مارو خلکو څخه ټاکل کیږي. د جرگې خلکو ته مرکچیان هم وایي. که چیرې کوم لوری د جرگې پرېکړه ونه مني، هغه د جرگې له خوا پړ بلل کیږي.**

## فعالیتونه

- ځوزده کوونکي دې متن په مناسب اواز ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

- زده کوونکي دې د جرګې په متن کې داسې کلمې پیدا کړي چې په هغه کې د پښتو توري راغلي وي او بیا دې هغه په خپلو کتابچو کې په جملوکې وکاروي، لکه: (ړ، ښ، ږ...).

- زده کوونکي دې د (لویې جرګې، پرېکړې او ګډون) کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې په جملو کې وکاروي.

- زده کوونکي دې لاندې جملې په غور سره ولولي، بیا دې د اړوندو پوښتنو سم ځوابونه د لاندې پاراګراف له مخې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

د جرګې پرېکړې د دوو لانجمنو ډلو د ستونزو د هواري لپاره کېږي. کله کله ملي ستونزې هم د جرګې له لارې هوارېږي. په جرګو کې مخور او په جرګو پوه کسان ګډون کوي.

- د جرګو مشران د چا ترمنځ پرېکړې کوي؟
- کومې ستونزې د جرګې له لارې هوارېږي؟
- په جرګو کې کوم ډول کسان ګډون کوي؟

| لغت | معنا |
|---|---|
| هواروي | خلاصوي |
| بڼه | شکل |
| پریکړه | فیصله |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د متن له مخې دغه کلمې په جملو کې وکاروي (جرګه، ستونزې، پریکړې) بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

اتلسم لوست

# پر حیواناتو زړه سوی

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او په حیواناتو باندې د زړه سوي په ارزښت پوهېدل





## پوښتنې

- تاسو کله په حیواناتو زړه  سوی کړی دی ؟
- ستاسو په فکر په حیواناتو باندې زړه سوی څه ګټې لري؟

**هغه حیوانات چې له کورونو بهر په دښتو او ځنګلونو کې اوسېږي. هغوی ته وحشي حیوانات وایي اوهغه حیوانات چې په کورونوکې اوسېږي، هغوی ته اهلي حیوانات وایي. موږ اهلي حیوانات ساتو او له هغوی څخه ډېرې ګټې ترلاسه کوو. د یو شمېر حیواناتو له غوښو، شېدو او پوستکو څخه ګټه اخلو. موږ باید پر حیواناتو زړه سوی ولرو چې هغوی راڅخه وږي نشي او باید هغوی ته زیان ونه رسوو.**

## فعالیتونه

- زده کوونکي دې متن په لوړ اومناسب اواز ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
- زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي، یوه ډله دې د اهلي حیواناتو نومونه او د هغو گټې د یوه استازي په واسطه ولیکي او بله ډله دې د وحشي حیواناتو نومونه او د هغوی گټې ولیکي. بیا دې د هرې ډلې استازی د خپلې ډلې نظرونه نورو ته ووایي.
- یو شمېر زده کوونکي دې په دې هکله خبرې وکړي چې حیواناتو ته باید زیان ونه رسوو.
- څو زده کوونکي دې د لوست په مفهوم خبرې وکړي او خپل نظر دې ښکاره کړي نوردې ورته غوږ ونیسي.
- څو زده کوونکي دې په وارسره په دې خبرې وکړي، که چیرې په حیواناتو زړه سوی ونه کړو او یا یې ووژنو څه زیانونه به رامنځته شي؟
- دوه زده کوونکي دې لومړی ځان معرفي کړي بیا دې د یو بل په مرسته د هغو حیواناتو نمونه واخلي چې د انسانانو په شاوخوا کې ژوند کوي.
- دوه نور زده کوونکي دې د ځان له معرفۍ وروسته هغه نومونه په جملو کې راوړي چې مخکې دوو تنو ویلي دي.

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| زړه سوی | مهرباني |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې د حیواناتو د گټو په اړه یوه یا دوه جملې په کتابچو کې ولیکي.

# سپین ږیری او د هغه زامن

**موخه**: د کلمو، جملو سم لوستل، لیکل او د یووالي په ارزښت پوهېدل





## پوښتنې

- په پورتنیو انځورونو کې څه وینئ؟
- ستاسو په نظر دا خلك څه کوي؟

**یو زوړ بزگر و. څو زامن یې درلودل چې ټول ځوانان وو. خپل زامن یې را وغوښتل. یو زوی یې ته وویل چې یوه گېډۍ لښتې راوړه. زوی یې ولاړ، لښتې یې راوړې. بزگر لښتې کلکې وتړلې. هر یوه زوی ته یې ورکړې او ورته ویې ویل چې دا گېډۍ ماته کړه. یوه هم د لښتو گېډۍ ماته نه شوای کړی. له هغه وروسته بزگر د لښتو گېډۍ خلاصه کړه، یوه یوه لښته یې ماته کړه او بیا یې خپلو زامنو ته وویل: ای زامنو! که یووالی ولرئ، هېڅ یو غښتلی لاس به پر تاسو بری ونه مومي اوکه مو یووالی نه درلود، زما په څېر یو کمزوری به هم پرتاسې بریالی اوسي.**

## فعالیتونه

- ښوونکی دې یوځل متن په مناسب اواز زده کوونکو ته ولولي او ټول زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.
- زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته لوست له ځانه سره ولولي، ښوونکی دې د هغوی ستونزې ورته حل کړي.
- زده کوونکي دې په متن کې داسې کلمې پیدا کړي چې د (پ، ټ، ړ، ژ، ښ، څ، ځ، ګ) توري په کې راغلي وي او بیا دې زده کوونکي په جملو کې وکاروي او پر تختې دې ولیکي.
- ښوونکی دې څو زده کوونکي د تختې مخې ته را وغواړي او هغه کلمې چې د (ز، ږ، ړ، ښ ډ) توري په کې راغلې وي پر تختې دې ولیکي او بیا دې یو یو زده کوونکی دا کلمې هېجا کړي.
- څو زده کوونکي دې په وارسره پورته شي، د لوست د مفهوم په هکله دې خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| بزګر | دهقان |
| یووالی | اتحاد |
| غښتلی | قوي |
| ځېر | شان |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د سپین ږیري او د هغو د زامنو کیسه په کور کې د کورنۍ غړو ته ووایي او بیا دې څو کرښې په خپله خوښه ولیکي.

# د مشرانو د مشورو منل

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د مشرانو د مشورو منل او په ګټو یې پوهېدل





## پوښتنه

- ستاسو په نظر د مشرانو د مشورو منل به څه ګټې ولري؟

**پرون زموږ د کلي سپین ږیرو او مشرانو یوه غونډه جوړه کړې وه. د کلي ټول خلک ورته راغلي وو .اجمل او زرغونې هم په دې غونډه کې ګډون کړی وو. دکلي مشر خلکو ته په خبرو کې وویل: تاسو پوهېږئ چې پاکوالی د ایمان یوه برخه ده او د روغتیا لپاره ګټه رسوي، نو ځوانانو او کشرانو! راځئ سهار ته چې د جمعې ورځ ده، د خپلو کورونو شاوخوا سیمې پاکې کړو او یو ګډ کار و کړو. ټولو خلکو د مشرخبره ومنله.**

**زرغونې اجمل ته وویل: وروره! راځه چې زه اوته هم بېګاه ته په خپل کور کې دا خبره وکړو او د خپل کلي د شاوخوا په پاکوالي کې برخه واخلو.**

## فعالیتونه

- زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته متن له ځان سره ولولي، ستونزمن ځایونه دې په نښه او له ښوونکي څخه دې پوښتنه وکړي.

- څو زده کوونکي دې په وار سره د متن یوه یوه جمله په مناسب غږ ولولي، که یې تېروتنه درلوده، ښوونکی دې ورته اصلاح کړي.

-څو زده کوونکي دې کیسې وکړي چې په خپلو کلو کې د مشرانو په مشوره کوم کارونه تر سره شوي دي.

- دوه زده کوونکي دې پورته شي، یو زده کوونکی دې له بل څخه په لاندې ډول پوښتنه وکړي او هغه دې ورته ځواب ورکړي، لکه په لاندې ډول:

- خلك په کلي کې د څه لپاره غونډه شوي وو؟

ځواب:...

زرغونې اجمل ته څه وویل؟

ځواب:...

- په غونډه کې د کلي مشر خلکو ته څه وویل؟

ځواب:.....

- څو زده کوونکي دې د مشورو د ګټو په هکله خبرې وکړي.

- څو زده کوونکي دې د سیمې د پاکوالي په هکله خبرې وکړي.

- څو زده کوونکي دې له ځان معرفي کولو وروسته د خپلې کورنۍ په اړه خبرې وکړي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د مشرانو د مشورو د ګټو په اړه څو کرښې ولیکي.

## يوويشتم لوست

# تاریخي شتمني

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د ملي شتمنیو په ارزښت پوهېدل او د هغوی خوندي ساتل





### پوښتنې

- تاسې د هېواد تاریخي ځایونه لیدلي دي، که مو لیدلې وي، نوم یې واخلئ؟
- ولې د هېواد تاریخي شتمنۍ د ارزښت وړ دي؟

**ټول منقول او غیر منقول تاریخي اثار تاریخي شتمنۍ بلل کېږي.**
**افغانان باید په ګډه هڅې وکړي چې خپلې ټولې تاریخي شتمنۍ خوندي وساتي. د هغو کسانو مخنیوی وکړي چې تاریخي شتمنۍ په بهرنیانو خرڅوي یا یې له منځه وړي. هغه خلك چې زموږ ملي شتمني غلا کوي، یوازې له پیسو سره مینه لري. هغوی د دې هېواد دښمنان او دغندنې وړ دي.**
**موږ باید د تاریخي شتمنیو څارنه او ساتنه وکړو. باید خپلې ملي شتمنۍ خوندي وساتو چې پرڅای پاتې شي.**
**که هر کال یو شمېر بهرنیان د دې شتمنیو د لیدلو لپاره زموږ هېواد ته راشي. له دې لارې به زموږ خلک او حکومت ډېره ګټه ترلاسه کړي.**

## فعالیتونه

- ښوونکی دې یوځل متن په مناسب اواز زده کوونکو ته ولولي او ټول زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.
- څو زده کوونکي دې متن په مناسب اواز ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
- دوه زده کوونکي دې پورته شي، یو دې په لاندې ډول پوښتنه وکړي او بل دې ځواب ورکړي.
  - مورږ خپلې تاریخي شتمنۍ څنګه وساتو؟
  - د تاریخي شتمنیو ساتل څه ګټه لري؟
  - کوم شیان په تاریخي شتمنیو کې ساتل کېږي؟

-څو زده کوونکي دې د تاریخي ځایونو د ارزښت او اهمیت په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
- یو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي، نور زده کوونکي دې د تاریخي ځایونو د ارزښت په هکله یوه یوه جمله ووایي او هغه دې پرتختې ولیکي. که په لیکلو کې یې تېروتنه وکړه، بل زده کوونکی دې ورته سمه کړي.
- څو زده کوونکي دې په هېواد کې د تاریخي ځایونو په هکله که یې لیدلې وي، خبرې وکړي.
- څو زده کوونکي دې په خپل منځ کې محاوره وکړي. ښوونکی دې ورته موضوع وټاکي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپل هېواد د تاریخي شتمنیو په هکله له خپل مور او پلار څخه معلومات وغواړي که یې زده وو، نومونه دې په کتابچو کې ولیکي.

## دوه و یشتم لوست

# د څارویو ګټې

**موخه**: د څارویو د نومونو پېژندل، لوستل، لیکل او د هغوی په ګټو پوهېدل





### پوښتنې

- په پورتنیو انځورونو کې څه وینئ، نوم یې واخلئ؟
- له کورنیو څارویو څخه کومې ګټې لاس ته راځي؟

څاروي ډېرې ګټې لري. دوی تل زموږ په ګټه کارول کېږي. بزګران په غوایانو قلبه کوي. له غوا، مېږو او وزو څخه شيدې په لاس راوړو او له غوښو څخه يې هم ګټه اخلو. د څارويو له څرمنو او وړيو څخه هم ګټې ترلاسه کېږي.

مثلا وړينې جامې، بنيانونه، خولۍ، جرابې او نور شيان له وړيو څخه جوړېږي.

آسونه، کچر او خره د بار او سورلۍ لپاره کاروو. بايد حيواناتو ته زيان ونه رسوو. هغوی ونه ځوروو او که ناروغه شي په درملنه کې يې لازمه مرسته وکړو.

## فعالیتونه

- ښوونکی دې یوځل متن په مناسب اواز زده کوونکو ته ولولي او ټول زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.
- زده کوونکي دې متن له ځان سره ولولي، که یې ستونزه درلوده، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.
-زده کوونکي دې په ډلو کې د کورنیو ژارویو دګټو په هکله خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې د څو ځنګلي او غرنیو ژارویو نومونه واخلي او په شفاهي ډول دې په جملو کې وکاروي.
- څو زده کوونکي دې ووایي چې کورني او ځنګلي حیوانات څه توپیر لري؟
- څو زده کوو نکي دې ووایي چې که چېرې حیوانات سم ونه ساتل شي او یا ورته زیان ورسېږي، څه به پېښ شي؟
- دوه زده کوونکي دې د ځان له معرفي کولو وروسته د اهلي ژارویو نومونه واخلي او په وار سره دې په جملو کې وکاروي.
- یو زده کوونکی دې د ځان له معرفۍ وروسته د څو وحشي حیواناتو نومونه واخلي.

## محاوره:

په ټولګي کې دې د محاورې لپاره دوه داسې کسان پورته شي چې کله پورته شوي نه وي هر یو دې د بل د پوښتنې په ځواب کې خبرې وکړي.

**لومړی زده کوونکی:**

ستا په ټولو حیوانا تو کې کوم حیوان خوښیږي؟

دویم زده کوونکی دې په ځواب کې ورته شپږ جملې ووایي.

**دويم زده کوونکی:**

اوس ته راته ووایه چې ستا په ټولو پرنده ګانو کې کوم پرنده خوښیږي؟

لومړی زده کوونکی دې شپږ یا اوه جملې ووایي.

اوس دې دوه نور زده کوونکي پورته شي او هریو دې له یو بل څخه پوښتنې وکړي.

**لو مړی زده کوونکی:**

ته را ته ووایه چې له میږو او وزو څخه کومې ګټې ترلاسه کیږي؟

دویم زده کوونکی دې د میږو او وزو د ګټو په هکله شپږ یا اوه جملې ورته ووایي.

**دویم زده کوونکی:**

اوس ته راته ووایه چې ستا په ترکاریو کې کومه ترکاري خوښیږي؟

لومړی زده کوونکی دې په دې هکله ورته خبرې وکړي او ډیرې جملې دې ورته ووایي.

که وخت وي دوه نور زده کوونکي دې پورته شي له یوبل څخه دې پوښتنې وکړي او بل ملګری دې ورته ځوابونه ووایي.

**لومړی زده کوونکی:**

ته راته ووایه چې یووالی څه ګټې لري؟

دویم زده کوونکی دې د یووالي د ګټو په هکله ورته خبرې کوي.

اوس دویم زده کوونکی پوښتنه کوي. ته راته وویه چې ملي شتمني څه وایي؟

لومړی زده کوونکی ورته په ځواب کې څو جملې وايي. نور زده کوونکي ورته غوږ نیسي.

**دویم زده کوونکی:**

ته راته ووایه چې زموږ د هیواد خپلواکي چا ګټلې ده؟

لومړی زده کوونکی په ځواب کې ورته د خپلواکی د ګټونکي نوم اخلي.

- زده کوونکو ته ووایئ چې په خپلو کتابچو کې د لاندې جملو تش ځایونه د چوکاټ له مخې ډک کړي:

| دنده | لرم |
|---|---|
| قلم | دی |
| ته ځي | بابا |

۱- زه په کور کې خپله کورنۍ ........... سرته رسوم

۲- دا زما د کاکا ............. دی

۳- زما ورور هر ورځ ښوونځي ته .....

- یو زده کوونکی دې پورته شي، پرتختې باندې دې د یو ډول میوې تصویر وباسي او نور زده کوونکي دې په وار سره د هغې میوې نوم واخلي. بیا دې بل زده کوونکی تختې ته و لاړ شي د هغې میوې نوم دې په جمله کې استعمال کړي.

- یو زده کوونکی دې پورته شي، د ځان د پاکوالي په هکله دې خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

- بیا دې بل زده کوونکی پورته شي، د خپل پلار یا ورور د دندې او کار په هکله دې خبرې وکړي



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د هغو ښاریو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي او په جملو کې دې وکاروي چې د هغو خوښیږي.

## دروېشتم لوست

# پاک سابه

**موخه**: د نظم سم لوستل، ليکل او د پاکو سبو د ګټو په هکله معلومات ترلاسه کول





### پوښتنې

- په پورتني انځور کې څه وينئ؟
- د ناولو سبو خوړل سړي ته څه زيان رسوي؟

ساېه ډېر خوندور خواړه دي، بدن ته ډېره ګټه لري. د پښتو ژبې شاعر او ليکوال محمد عثمان نژند په دې اړه ماشومانو ته يو ښکلى شعر ويلى چې په لاندې ډول يې لولو.

کاهو ووې ګندنې ته — د سبو دې نمونې ته

ماشوم موړ ته هوسېږي — په خوراك مو نه پوهېږي

نا مينځلي موږه خورينه — دسترخوان لره مو وړينه

چې په ګېډه يې کله شورشي — وار خطا يې پلار او مور شي

لږه مالګه په اوبو کې — چې يې حل په څو شېبو کې

په پتاس باندې پاکېږي — له ګيلو څخه خلاصيږي

پاك کاهو ډېر ګټور دي — چې يې پاك خوري بختور دي

(اروانباد محمد عثمان نژند)

## فعالیتونه

- ښوونکی دې یوځل متن په مناسب اواز زده کوونکو ته ولولي او ټول زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.
- څو زده کوونکي دې متن په وار سره ولولي او ښوونکی دې د هغوی ستونزې ورته حل کړي.
- څو زده کوونکي د ټولګي مخې ته راشي، ځانونه دې معرفي کړي. بیا دې یو زده کوونکی یو بیت ولولي او بل دې مفهوم په خپل ژبه ووایي.
- یو زده کوونکي دې پورته شي، پر تختې دې د (پاك سابه) نوم ولیکي. نور زده کوونکي دې د هغو د ګټو په اړه یوه، یوه جمله ووایي.
- زده کوونکي دې د لوست په متن کې هم وزنه کلمې پیدا او بیا دې هغه هېجا کړي.
- څو زده کوونکي دې د هغو سبو نومونه واخلي چې هم خام خوړل کېږي هم پاخه، نور دې ورته غوږ ونیسي.
- دوه زده کوونکي د ټولګي په وړاندې د ځان له معرفي کولو وروسته ووایي چې پالك څنګه پخیږي او ګندنه تر خوړو دمخه څنګه پاکېږي؟
- په څو زده کوونکو باندې محاوره وکړئ چې یو زده کوونکی له بل څخه په کور کې د هغه کار په هکله پوښتنه وکړي که چیرې وخت و په همدې ډول محاورې ته دوام ورکړئ.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپله خوښه د هغو سبو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي چې هم اومه او هم پاخه خوړل کېږي او بیا دې په جملو کې وکاروي.

# مرسته او دوستي

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل، د مرستې او دوستی په ارزښت پوهېدل





## پوښتنې

- تاسو کله له چاسره دوستي کړې ده؟
- ستاسو په فکر دوستي څه ګټې لري؟

**له يوبل سره دوستي کول ښه کار دی. په دوستۍ کې مينه او محبت ډېرېږي. دوستان د ستونزو په وخت کې له يو بل سره مرسته کوي او د يو بل په درد خوري. کينه او دښمني د دوستانو شمېر کموي او انسان په ټولنه کې يوازې کېږي. انسان بايد له پوهو او ښو خلکو سره دوستي وکړي. ښه دوست چا ته زيان نه رسوي، د دوستۍ ګټه دا ده چې دوستان زياتېږي له يو بل سره په سختو حالاتو کې مرسته کوي.**

## فعالیتونه

- ښوونکی دې یو ځل متن په مناسب اواز زده کوونکو ته ولولي او ټول زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.
- زده کوونکی دې متن په وارسره ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
- زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د دوستۍ د ګټو په هکله یوه یوه کرښه ولیکي او په ټولګي کې دې ووایي.
- څو زده کوونکي دې په وارسره په ټولګي کې د دوستۍ د ګټو په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
- زده کوونکي دې متن ولولي. په خپله خوښه دې له متن څخه څو کلمې خوښې کړي، په جملوکې دې وکاروي او بیا دې په ټولګي کې ووایي، نور دې ورته غوږ ونیسي.
- یو زده کوونکی دې پر تختې د دوستۍ کلمه ولیکي. نور زده کوونکي دې د دوستۍ د ګټو په هکله یوه یوه جمله ووایي او لومړی زده کوونکی دې هغه پر تختې ولیکي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| کینه | بعض، عقده |
| ګوښی | یواځې، تنها |
| ګټه | فایده |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې د مرستې په هکله څو کرښې ولیکي او په بل درسي ساعت کې دې ووایي.

# پنځه ویشتم لوست

## هېواد پالنه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د هېواد پالنې په ارزښت باندې پوهېدل





### پوښتنې

- ستاسو په فکر هېواد پالنه څه ته و ایي؟
- ستاسو په نظر هېواد پالنه څه ګټې لري؟

**له هېواد سره رښیتنې مینه، ساتنه او ودانول یې هېواد پالنه بلل کېږي. زموږ هېواد افغانستان دی. موږ په دې هېواد کې زېږېدلي یو او دلته ژوند کوو. د هېواد له اوبو او هوا څخه ګټه اخلو. موږ ټولو ته لازمه ده چې خپل هېواد ته کار وکړو. هغه اباد او ودان کړو او په ساتلو کې یې تل زیار و باسو.**

**هېواد د علم او پوهې په واسطه ودانېږي. که څوک د هېواد د هرې برخې د خرابولو په برخه کې حرکت کوي باید په خبرو یې پوه کړو چې له هغه عمل څخه لاس واخلي او د خپل هېواد په ودانولو کې برخه واخلي.**

## فعالیتونه

- ښوونکی دې یوځل متن په مناسب اواز زده کوونکو ته ولولي او ټول زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.
- څو زده کوونکي دې متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
- څو زده کوونکي دې پورته شي او د هېواد پالنې په هکله دې خبرې و کړي.

- زده کوونکي دې د هېواد پالنې په هکله په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکي او بیا دې څو نور زده کوونکي په ټولګي کې وواییي .

- دوه زده کوونکي دې پورته شي، له یو بل څخه دې پوښتنې و کړي او هغه بل دې ورته ځوابونه ورکړي، نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.
- څو زده کوونکي دې په وار سره د خپل ښوونځي په اړه خبرې وکړي.
- درې زده کوونکي دې پورته شي، ځانونه دې په وار سره معرفي کړي او لس پښتو کلمې دې وواییي.

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| ودانیږي | اباد می شود |
| مینه | محبت |
| زیار | زحمت |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورونو کې خپل ځانونه معرفي کړي.

## شپږ ویشتم لوست

# انساني حقونه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د انسانیت په گټو او چلند پوهېدل





### پوښتنې

- ستاسو په فکر یو انسان باید کومې ځانگړتیاوې ولري؟
- د انساني حقونو په هکله څه ویلای شئ؟

**ټول انسانان یو پر بل حقونه لري. د هر انسان حق ته درناوی د ټولو انسانانو دنده ده. د انسانانو ترمنځ امتیاز او تبعیض منع دی. ښځې او نارینه یو شان حقونه لري. ژوند د انسان طبیعي حق دي. د بیان ازادي د انسانانو طبیعي حقونه دي. موږ ته پکار دي چې د انسانانو حقونو ته درناوی وکړو او هیچاته په ژبه یا لاس زیان ونه رسوو.**

## فعالیتونه

- ښوونکی دې یوځل متن په مناسب اواز زده کوونکو ته ولولي او ټول زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.
- زده کوونکي دې د لوست متن په مناسب اواز ولولي او ښوونکی دې ورسره په لوستلو کې مرسته وکړي.
- ښوونکی دې په وار سره په زده کوونکو باندې لوست ولولي.
- یو زده کوونکی دې د ټولګي په مخکې د پسرلي په اړه څو خبرې وکړي.
- دوه زده کوونکي دې پورته شي. له یو بل څخه دې د انساني حقونو په هکله پوښتنې وکړي او هغه بل دې ورته ځواب ورکړي.
- یو زده کوونکي دې پورته شي، د لوست مفهوم دې په خپله ژبه بیان کړي.
- دوه زده کوونکي په ټولګی کې پورته کړئ. لومړی زده کوونکی دې له دویم څخه پوښتنه وکړي چې په کور کې له خپل مور او پلار سره په کومو کارونو کې مرسته کوي، بیا دریم زده کوونکی پورته کړئ لومړی زده کوونکی دې کښیني او دویم دې له دریم زده کوونکي څخه په هماغه ډول پوښتنې وکړي نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.
- یو زده کوونکی دې پورته شي خپلو ټولګیوالو ته دې ووایي چې ماشوم په خپل مور او پلار څه حقونه لري؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د انسانانو د حقونو په هکله له خپل مور او پلار یا کوم بل نږدې خپلوان څخه معلومات وغواړي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# اووه ویشتم لوست

## باران

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د باران په گټو پوهېدل





**پوښتنه**

– ستاسو په نظر باران څه گټې لري؟

**په ژمي او پسرلي کې ډېر بارانونه کېږي. بارانونه ځمکو، دښتو او غرونو ته ډېره گټه رسوي وابنه او فصلونه پرې خړوبېږي. که په یوه سیمه کې د باران اورېدل زیات شي، ږلۍ او یا د آسمان غوریدل ورسره ملگري وي، نو په داسې وختونو کې باید په خوړونو کې ولاړ نشو، ځکه چې د سېلاب د را وتلو امکان وي.**

**د تېز باران او ږلۍ په وخت کې لازمه ده چې ځان خوندي ځای ته ورسوو هغه کورونه چې په ټیټو ځایونو او د خوړونو ترخنگ جوړ شوي دي، د بارانونو او سېلابونو په وخت کې مادي او ځاني زیانونه ورته رسېږي.**

## فعالیتونه

- ښوونکی دې یوځل متن په مناسب اواز زده کوونکو ته ولولي او ټول زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.
- زده کوونکي دې متن په وار سره ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
- زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي او هر ډله دې د نوي لوست سخت او مشکل لغاتونه په نښه کړي او ښوونکی دې ورته معنا کړي.
- یو زده کوونکی دې له بل څخه پوښتنه وکړي چې د تېز باران او یا د ږلې د اودرېدو په وخت کې کوم ډول عمل ترسره کړو.
- یو زده کوونکی دې ووایي چې باران څه ګټې لري.
- څو زده کوونکي دې په ټیټو ځایونو او د خوړونو په غاړو کې د کورونو د جوړولو په زیانونو خبرې وکړي.
- څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، له یو بل څخه دې د هغه د عمر، ځای او ښوونځي په اړه پوښتنه وکړي، ځواب دې واوري او ودې ووایي چې پښتو یې څومره زده کړې ده.
- دوه زده کوونکي په ټولګی کې پورته کړئ، لومړی زده کوونکی دې له دویم څخه پوښتنه وکړي چې په کور کې له خپل مور او پلار سره په کومو کارونو کې مرسته کوي، بیا دریم زده کوونکی پورته کړئ لومړی زده کوونکی دې کښېني او دویم دې له دریم زده کوونکي څخه په هماغه ډول پوښتنې وکړي نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې د باران د ګټو په هکله په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکي.

## اته ویشتم لوست

# وزلوبه

**موخه**: د کلمو سم لوستل، لیکل او د وزلوبې پېژندل





### پوښتنې

- په پورتني انځور کې څه وینئ؟
- وزلوبه څه ډول لوبه ده؟

**وزلوبه زموږ په هېواد کې یوه په زړه پورې لوبه ده. زموږ د هېواد په یو شمېر ولایتونو کې دا لوبه ډېره دود ده.**

**وزلوبه د پسرلي او مني په موسمونو کې ترسره کیږي. د وزلوبې ډلې ځانګړې جامې لري، دوی لوبه په یوه ټاکلي ځای کې سرته رسوي چې هغه ځای ته د وزلوبې میدان وايي. د لوبې د میدان په مرکز کې لوبغاړي هڅه کوي چې خوسکی د لوبې د میدان مرکزي دایرې ته ورسوي. خو د مخالفې ډلې غړي یې مخه نیسي، خو لوبغاړي نوموړې دایرې ته د خوسکي په رسولو سره هر ځل نمره اخلي.**

## فعالیتونه

- زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
- زده کوونکي د لوبو د ارزښت په باره کې په وارسره خبرې وکړي.
- څو زده کوونکي دې په ټولګي کې پورته شي. هر یو دې په وار سره د یوې لوبې په باره کې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې د هېواد، لوبه، دود، اسونه، خوسکی، وز لوبې او جامې کلمې په خپلو کتابچو کې په جملو کې استعمال کړي.
- څو زده کوونکي دې د وزلوبې په هکله معلومات ورکړي.
- دوه زده کوونکي دې له ځان سره فکر وکړي چې کومې پښتو کلمې یې نوې زده کړي. وروسته دې په وار سره هغه کلمې ووایي.
- ښوونکی دې په زده کوونکو باندې د درسي ساعت تر پای پورې محاوره وکړي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| دود | دستور |
| ډګر | میدان |
| ډله | ګروه |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې څو مفردې کلمې له متن څخه په کور کې وټاکي، بیا دې هغه په خپلو کتابچو کې د جمعې په کلمو سره واړوي.

# د پوهنې ترانه

پوهنه ده رڼا      وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم      زمونږه رهنما

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

وطن زما یې ځان      له تانه شم قربان
ته وینه د افغان      ته لوړ په ټول جهان

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

اباد اوسې اباد      وطنه ته شې ښاد
مونږ سرښندو په تا      او ساتو دې ازاد

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

ته کور یې هم مې ګور      ته پلار یې هم مې مور
ته زړه یې د اسیا      زما د سترګو تور

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

ته ننګ یې د اریا      او تاج یې د یما
ځارېږمه له تا      افغانستان زما

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

محمد مُعین مرستیال